ټول حقونه د لیکونکي په حق کښې محفوظ دي


د کتاب نوم ———— هندکی او هندکو

د لیکونکي نوم ———— خواجه مُحمّد سائل

د چاپ نیټه ———— جون ۱۹۹۸ ء

بیعه ———— اَتیا (۸۰) روپۍ

پریس ———— سلیمان پرنټرز پېښور

کتابت ———— سیّد حضرت شاه

# فہرست

# څوخپلې خبرې

دَ هندکي او هندکو متعلق تاما دَ دې تحرير غټ مقصد داد ے چې دَ هغه ليکونکو دې ځايه فرضي او دروغونه ډک ليک نخ نيوۍ وشي چې څهٔ مودې راسې دَ تاريخ دَ اصليت او حقائق دَ شکل مسخ کولو کوشش کوی. او دَ هندکي هندکو متعلق دَ ځانه جوړ او په دروغو بناء دلائل پيش کوی. مادَ دې کتاب ليکلو کښې دَ اختصار او محض په تاريخي بناء شواهدات او حواله جات نه کار اخيستې دے او کوشش مې کړے دے چې بحث او تبصرې نه اجتناب وُشي. او په دې موضوع دَ قديم مؤرخين ليک او تحرير دَ قارئين او لوستونکو مخې ته کيښودے شي او د هغوئ دَ صحي او غلط ادکره کسو ته جاج واخلي او صحي راسې خاتمه کړي. تاريخ په حقيقي شکل پرده را ښکاره او په هوا کښې مارغان نيول دَ عقلمندانو کار نهٔ دے. بلکه دغه هوائي او بې سر و پښو خبرې بيانات او تحريرات دَ ختم او تېښتو بو زغت شي.

د هندکي او هندکو متعلق د انګرېزي سلطنت دوران ملکي او غیر ملکي مؤرخینو او اهل قلم ډېرڅه لیکلي دي. پښتو ادب کښې د ځینو شاعرانو په کلام کښې هم د دوی متعلق ذکر موجود دے. د دې ټولو مؤرخینو په نز د هندکي او هندکو د هندوستان نه د راغلیو هندوانو ژبه ده. البته د جارج ګریرسن د تحقیق نه په اول ځل دغه زمانه پته ولګېده چې دلته هندوان یا د مغربي پنجاب نه راغلي مهاجرین کومه ژبه وائي. نو دا د دریاب جهلم د غاړې د رهنا بارې دوآب لهانډا[1] ژبه ده

د رنجیت سنګه د پنجاب په سیمه د بربریت او د دهشت او د دې په نتیجه کښې خوف و هراس د مغربي پنجاب د لانډا ژبې ویونکي مجبور کړل چې محفوظ علاقو ته هجرت وکړي. دریاب جهلم نه راپورته د سنده ساګر علاقې نه د پرنا یات خلق په تېښته داوُ رسېدل او چې سکهان دریائ جهلم نه راپوري وتل نو د مهاجرینو پوله ئې تعداد د غرونو کښې پټ شول. دریائ سنده نه راپوري وتل - او پښتون قوم ځکه یې پناه واخسته. او پښتون د اسلامي ورور ولۍ جذبې او اسلام ځکه د بې کچه مینې تحت دوئ ځان ځکه د کډوالو آباد کړل. همغه بیله خبره ده چې سکهان دریائ سنده نه هم راپوري نه وتل. د پښتنو کورونه

---

[1] د هندي یا اردو لهجې برعکس "لها نډا" لفظ یا نوم به په راتلونکي ټیک تحریر کښې د پښتو د ټیک دود دستور او لهجې مطابق "لانډا" لیکلي شي.

ورانه شول، وُسوزل بدل او غروز پلو لاړل. خو اخپر کار حالات نا سم شول. د مغربي پنجاب نه کوره نۍ اوره مهاجرین او پناه گزین دلته مستقل پاتې شول او د پښتنو په سیمه اباد شول.

پښتون تجارت پېشه ساهوکاران نه وو. دوکانداري او نورکسب وهنرته یې په سپک نظر کتل. د پنجاب دغه نوي آبادکارو ته د دوی د دغه کمزورۍ لویه فائده ورسېده. څه موده تېره نه وه چې دغه مالدار شول او د کورمحلت او جایداد خاوندان شول.

لکه چې مخکښې ذکر شوی دی ډېرو انګرېز مؤرخینو د هندکي هندکو متعلق کافي معلومات او تحقیقات کړي دي. او هېڅ قلم ته یې کار ندی. چې د تاریخي کتابونو څخه استفاده وکړي او لوستونکو ته صحي معلومات ورکړي. په دې کتاب کښې زه کوشش کوم چې د هرکم سرچینې ذکر او اقتباسات رانقل دي. تو بائید دي چې زه مونږ پښتانه او هندکي لیکوال د دغه تواریخي کتابونو مطالعه وکړي او په حقیقت بناء مستند معلومات او مواد راټول کړي.

د صوبې د نوم متعلق نن سبا پښتون هندکي لیکوال مختلف قسم تجاویز او نومونه پېش کوي. په کار ده چې په دې موضوع یو سرسري شان رڼا واچوو چې حقیقت واضح شي.

د صوبه سرحد د نوم نه آګاه هردا علاقه خپنې لیکوالو د "روه" خپنې د کوهستان[له] او بغیله پښتنو د پښتونخوا په نوم سپېړنده.

---

له علامه اقبال تو واري دا سیمه بخپل کلام کښې د "کوهستان" په نوم یاده کړې ده.

د پښتونخوا نوم باره کښې ئې مضامين د ۱۹۷۲ء بانګ حرم پښتو برخه. سن ۱۹۹۰ء کښې، د ورنۍ تېرپوست د خطوط کالم کښې - ۱۹۹۱ء کښې ئې ما چاپ کتاب "کوټه اسپي د پکتو یک سرخط تحت" او ۲۲ دسمبر ۱۹۹۷ء مشرق اخبار کښې چاپ شوي دي.

"پښتونخوا" د سياسي بحث مباحثې، مخالفت او ذاتي انانيت نه بالاتر او مضبوط نوم دے. چې د پښتو ادب د کلاسيکي شعرا د ادوارو په کلام او تحرير کښې تسلسل ورسره موجود را روان دے. د دې تاريخي حقيقت او اصليت نه انکار د پښتون قوم د شخصيت، اصليت، ادب، تاريخ او د سنګو ترنارکو نو کلو تو قدامت نه سکوت منکر بدل دي. د حقائقو نه چشم پوشي او نمي په کو نه پېژنول دي. د پښتونخوا د نوم نه انکار پښتو ادب ته نا انصافي او ظلم دے چې د پښتو ادب هيڅ بو ييکول دې قسم نيا نيه او د تاريخ حقيقي شکل بدلول او په بل رنګ کولو نه نيا رنه دے.

## روه

د تاريخ فرشته ليکونکے محمد قاسم داسې د "روه" يعنې غر" په نوم ياده کړېده - او د دې ځاۍ اسېدونکي "افغان" بيانيي - هغه په دې علاقه د "هند کې" د ميشت او استوګنې هيڅ ذکر نه کوي.

"روه" سے مخصوص کوهستاني سلسله مراد ہے. جو لمبائي ميں بجور سے سيوي اور چوڑائي ميں حسن ابدال سے کابل تک پھيلا ہوا ہے"

(تاريخ فرشته جلد اول ص ۸۲)

نعمت اللہ ہروی لیکی :

" روہ " عبارت است از کوہ مخصوص کہ ابتدائے طول آں از داد کلیا بوڑتا قصبہ سیوی از توابع بکھر و با اعتبار عرض از حسن ابدال تا کابل و قندھار در حدود این کوہ واقع است . کوہ سلیمان و کوہ اشنغر در مابین این کوہ است "

( مخزنِ افغانی )

محمد حیات خان خلف محمد کرم خان متوطن واہ ضلع راولپنڈی لیکی : " حصۂ شرقی بنام ملک روہ ، یعنی پہاڑی نامزد ہوا ۔ محمد اکبر بادشاہ نے تقسیم صوبجاتِ ہند کے وقت اس ملک کو صرف بنامِ صوبۂ کابل تحریر کیا ... روہ کی حدود کو اُس وقت کی مؤرخوں نے جانب شرقی دریائے سندھ کو عبور کرکے حسن ابدال تک جا لکھا ہے ۔ بلکہ مؤلف کے زمانہ میں بھی اکثر جغرافیہ نویس افغانستان اور بلوچستان کو ایک حلقہ میں لکھ دیتے ہیں ۔

( حیاتِ افغانی ص ۳ )

سید الطاف علی لیکی :

" روہ " افغانستان میں کوہستان کا ایک وسیع سلسلہ ہے ۔ جس کے شمال میں کوہ کاشغر جنوب میں بھکر اور بلوچستان ، مشرق میں کشمیر اور مغرب میں دریا ہلمند ہے ۔ جو قندھار کے قریب بہتا ہے ۔

( حیاتِ حافظ رحمت خان ص ۲ )

ډاکټر حبیب الله تږي لیکي:

د "تاریخنامهٔ هرات" او "روضات الجنات في اوصاف مدینة الهرات" او ځینو نورو اسنادو له حقیقي مطالعې او تحلیل نه وروسته سړی دا ویلی شي چې د ځینګېز یانو د وخت نه (افغانستان ریښتونخوا) په عمومي ډول د هرات نه ترکشمیره، سیستان نه ترا باسینده او چترال نه تر بجېږه غرب پورې پروت وو

(په هند کښې د پښتونخوا او او بیا ترډ ایجاد او ورکړې پراو نه.

(د سر محقق نړۍ هېواد مل ص۱۱)

سر اولف کیرو لیکي:

"داحقیقت لکه د نمر ښکاره دې چې د کند هارا سرحدي مار کله دو. پښتانهٔ چې نن هُم مار کله ته راوُرسي نو هغوی داسې محسوس کړي لکه چې خپل کورته راورُسېدل. او یا خپل کور ته بېرته راوان دي.

(پټان ص۸۳)

"د بېږ پښتون په نظر کښې هندوستان هغه ملک وو چې سرحد یې د دره مارګله بلې غاړې نه شروع کېدو. (ټیټه) د پښتو ادب یوه ذره تپه ده.

[illegible] ملک ته پرېږنه ... ورته بانډ وان د مارګلې په کنډو بدمه

# صوبه کابل او مشرقي افغانستان

د مغل دوران حکومت صوبهٔ کابل، د دریاب جهلم پورې پر ته علاقه وه او د درانیانو په زمانه دا علاقه د مشرقي افغانستان په نوم یادېده.

د رنجیت سنگه د قبضې نه وروستو د پښتو داتک او هزاره علاقه د سکه حاکم تحت وه او د سکه اخیرنی نوجدار سردار چتر سنگه وو. ۱۸۴۹ء کښې د چتر سنگه د شکست نه پس د دې سیمې حکمران انګرېز شو.

د انګرېز سرکار آخری دوره کښې چې د تورې او مړانې ځای کسب و هنر او تعلیمي قابلیت واخیستو. د منتو او جنګي صلاحیت مقام چرب ژبانې او سیاست ونیوو - د شمشیر زن او بهادر کلیوال راج، خانی، سردارۍ او حاکمیت ختم شو او د حکومت و ملازمت اهمیت ښاریانو ته منتقل شو. نو د ښار په سیمه هند کې مهاجرین د ښهٔ قسمت او روزنې مستقبل مالکان شول. د پاک بهارت د وېش نه پس د سرکاری ملازمت په اهم عهده و د ښاري علاقو باشندګان تعینات شول او د کلیوال علاقو پښتانهٔ وسېدونکی د هر قسم سهولیات او مراعات نه محروم شول.

# صوبه سرحد

۱۱ ستمبر ۱۸۰۳ء و دچې انګرېز جرنیل لارډ لیک آګره او دهلي فتح کړل. مغل بادشاه شاه عالم ثاني او دده نه وروستو مغل شاهان برائے نام د دهلي بادشاهان شول. او دا سلسله د بهادرشاه ظفر ۱۸۵۷ء تر بادشاهت جاري وه. انګرېزانو د آګره، دهلي، اوده، روهیلکنډ او فرخ آباد مفتوحه علاقو نه یوه صوبه تشکیل کړه او د دې صوبې نوم یې شمال مغربي صوبه N.W.P. کېښود ددې څکه چې دغه صوبه دغه زمانه کښې د دوئ د هندوستان د حکومت په شمال مغرب اړخ پرته وه.

مارچ ۱۸۴۹ء کښې انګرېز د سکهه سلطنت اخبر عاپاني علاقه بشمول پښور، هزاره، اټک، چاترسنګه نه قبضه کړه او انګرېز د خیبر غرونو څواته راورسیدو. پوئېځوس کاله انګرېز سرکار سکهانو انتظامي ډهانچه نسبتاً دستور بحال وساتله او د خپل ضرورت مطابق یې لږ دېر ردوبدل وکړو. خو د پښتنو د انګرېزانو خلاف الغاو تلغاو متواتر جنګو نه او جهاد انګرېزان مجبور کړل چې د دې علاقې د انتظامي

صلاحیت او فعال بندوبست په غرض یوه نوې صوبه تشکیل کړې ـ
څرنګه اوس د انګرېز سرکار د حکومت په شمال مغرب برید دا علاقه وه
نوې دې وجه یې دا صوبه د صوبه سرحد په نوم متعارف کړه.

**The province of N.W.F.P. was constituted on the 1st March 1901**
**( Census of India 1901 by H.H. Risley and E.A. GAIT page-66)**

ترجمه: د شمال مغرب سرحدي صوبه په یکم مارچ ۱۹۰۱ء وجود
کښې راغله د N.W.P. او د N.W.F.P. په نومونو کښې توارد او
یو شان والې وو لوظ ورې وه چې د N.W.P. نوم بدل شي نو په دې اساس
د N.W.P. نوم متحده صوبه جات اوده واګره[1] شو او د بدقسمتۍ نه د
پښتونخوا نوم د انګرېز سرکار په کاغذات شمال مغربي سرحدي صوبه شوه.

**In 1901 Lord Curzon created on the western frontiers of our country a new Province, named N.W.F.P. with a view to defend the country from all possible dangers as also to solve the tribal question. in order to avoid confusion of the similarity of names between the new province and the earlier North Western Province, was re-named as the United Province of Agra and Auadh.**
**(History and Administration of N.W.P. By Dharma Bhanu P-407).**

ترجمه: سنه ۱۹۰۱ء کښې لارډ کرزن زمونږ د ملک په مغربي سرحد
یوه نوې صوبه تشکیل کړه او د دې نوم یې شمال مغربي سرحدي صوبه
کېښودو. چې ملک د هر ممکن بېروني خطرات نه محفوظ وساتي.
او د قبائلي مسئله هم حل کړي. د نوې او زړې صوبې په نومونو کښې د
یورنګۍ لرې کولو په غرض زمونږ صوبه د متحده صوبه جات اوده
واګره په نوم شوه

---

۱. نن د پاک بهارت د ویش نه پس اوس دا علاقه د اُتهر پردېش **U.P.** په نوم صوبه ده.

رائے بہادر دیوان چند اُبھرائے لکی ،

It may be said that Ranjit Singh created NWFP by sweeping the Afghans back across the Indus into their mountains.
(The Evolution of NWFP by D.C Obhrai. Page 30).

ترجمه: دَشمال مغرب سرحدی صوبه حقیقت کښې هغه وخت وجود کښې راغله چې رنجیت سنگه پښتانهٔ دَ دریابې سند ه په شاغرونو ته واپس وُتمبول.

۱۸۴۹ ء کښې چې انګریزان دَ پښتنو په سیمه قابض شول. نو بقولِ آرتهرسو پنسن ــ

The Frontier Province an inexhaustible vein of excitement. It was a testing ground for new weapons, it was a live training area for officers and men; it made the army feel that it had a real job to do.
(NW.Frontier Page 343)

ترجمه: سرحدّ جوش نه ډک یونهٔ ستړی کیدونکی اعصاب راکړل. دا ځائې دَ نوې وسلې دَ پاره آزمائشی میدان وو. افسرانو او ځوانانو دَ پاره دَ ښه او ملکوک تربیت علاقه وه. دلته فوجي ځوانانو محسوس کړل چې حقیقي معنوکښې دې فرائض په غاړه دی .

مونږ دلته دَ اللہ بخش یوسفي دَ یو تقریر نه اخذ دَ دې خوکرښو بیان دَ کرهم ضروری گڼوچې هغهٔ دَ خلافت کمیټۍ او سادات رضا کار بو اجلاس نه کړے وو .

Allah Bakhsh Yusafi who referring to Sir.Hamilton Grant's remarks in regard to the Pathans that they would destroy the peace of India if the British left.( S B Diary S.No.37. B.3 dated 24-01-1930)

ترجمه : اللہ بخش یوسفی دَ سر هملٹن گرانټ دَ بیان په حواله ووې چې کهٔ چرې انګریزان هندوستان نه لاړل

نو پښتانهٔ به د هندوستان پُرامن ماحول تباه او برباد کړی.

---

## پښتونخوا

مونږ پښتون دُښمن قوتونو په قسم قسم نومونو یاد کړی یو. د دغه غیرپښتون مؤرخین د نومونو افغان[1]، پټان، کوهستانی او روهیله برعکس پښتون همیشه نَپل ځان هم پښتون یاد کړېږي. د غیرپښتون مؤرخین دغه نومونه ځینې وخت د دوی په تتبع کښې اِرادتًا یا غیرارادی طور پښتون شعراو او ادباؤ هم استعمال کړی دی.

دغسې غیرپښتون مؤرخین که هرڅونه مونږ علاقه د "روه"، "کوهستان" یا شمال مغربی سرحدی صوبه یاده کړېده ولې پښتون دا صوبه د پښتونخوا په نوم پېژندله. دلته زهٔ د هیرو ډوټس، بطلیموس او نور یونانی وغیره مؤرخین د پکتیکا، پکتیا، پکتی ها نومونو ذکر نهٔ کوم، بلکه د قدیم پښتو شاعرانو او ادیبانو په واسطه وایم چې هغوی دا علاقه د پښتونخوا په نوم پېژندله.

ښکارندوی ۱۲۶۲ء، هوتک بابا ۱۲۹۳ء تا ۱۳۰۱ء، اخون درویزه ۱۵۳۳ء تا ۱۶۳۸ء، خوشحال خان خټک ۱۶۱۳ء تا ۱۶۸۹ء، صدرخان خټک بن

---

[1] افغان د ارمینی ژبې د اوغان معرب شکل دے چې معنی یې "غر" دے.

خوشحال خان خټک، سعدالله خان مومند ۱۶۷۵ء تا ۱۷۴۵ء، پیر محمدؒ کاکړ ۱۷۰۹ء تا ۱۷۸۹ء، احمد شاه ابدالي ۱۷۲۴ء تا ۱۷۷۲ء، علي اکبر بن قاسم ۱۷۳۴ء تا ۱۷۸۹ء، میاں نعیم متي زی ۱۷۶۷ء تا ۱۸۱۵ء وغیره. د انګریز حکومت د قیام او د د پ صوبې ۱۹۰۱ء کښې د تشکیل نه ډېر اګاهو دا علاقه د پښتونخوا په نوم یاده کېږي ده.

د هندکی هندکو متعلق زما دا معمولي کوشش کچا سپکا وے یادونا وے هرګز نه دے بلکه زما غټ مقصد تاریخي حقائق بیانول دي. تاریخ د تصوراتي، خیالي سوچ و فکر او فرضي داستان نوم نه دے تاریخ د تېرو واقعات وحالات په ټهوس دلائل بناء او د نقل په تول پوره محکم بیان دے. چې یو مؤرخ یې یو نسل نه بل نسل ته امانت سپاري او راتلونکې نسل د قومونو عروج و زوال په دغه صفا شفاف آئینه کښې ګوري او د خپل مستقبل تعین د دغه تاریخي حقائق په رڼا کښې کوي.

---

او د ځان و مال د تباهي باعث وو.

تاسو ګورئ چې نه مونږ د تاریخ د ذرو تهذیب اثار عموماً د غرونو په سر او خوا کښې را وړې. او داسې د پوکم اثار د غاړې په میداني سیمو مونده شي. د غه وجه ده چې د پنجاب په سیمه کښې یو خواد پینځه دریابونو، جهلم، چناب، راوي، ستلج او بیاس د تباه کارۍ په سبب انساني تمدنونه ناممکن وو چې نن په دې ترقي یافته دور او وسائل باوجود هم په دغه علاقو مېشته ابادۍ ته هر کال کافي نقصان او زیان رسي او هر کال د برشکال په میاشت کښې د پنجاب کلي ښارونه کلي او ښارسې ذ دې سیند د نو د سیلابونو نه د لاندې دي، نو بل خوا د آریا، سیتهین، ساکاکشن، ایراني، یوناني، هن، ترک وغیره اقوام چپاؤنه او یلغار وو چې د پنجاب په سیمه انساني تمدن تقریباً ناممکن او مشکل وو. دا د ظهیرالدین بابر د دوران نه پس او د مغل شاهانو فراست وو چې د کابل سلطنت یې په هر حال د هند د سلطنت یو ضروري جزو او برخه وساتله. او ذ دې اصولي د هند سلطنت څخه شمولیت که پښتنو د پاره په راتلونکي وخت د هر ځای لویې مصیبت ورنو پنجاب د پاره یو نیک فال او لویې برکت وو.

د کابل و پېښور صوبې آمدني کمه ده. خو د الشون
دا بیمه د هندوستان پاتک او د دروازه تنبي د هندستان
مغل بادشاه د دې ځای نه فوجي مصارف د پاره کافي رقم

په دې غرض استوی چې ایران و توران څخه د دې ځای سرحدات محفوظ وی. صوبهٔ کابل پخوا نه ما ته د هندوستان د قلمرو نه خارج وه. او تورانیانو د هندوستان سرحدات لوټل نتیجه دا وه چې پنجاب هر وخت وران و وېجاړ پروت وو او س چې کابل د هندوستان د مغل بادشاهانو ته دے نو پنجاب آباد دے او هندوستان محفوظ دے "

(خلاصة التواریخ ص ۱۳۶ ، تصنیف و تالیف ۱۶۹۶ء)

د مغل سلطنت دوران د پنجاب ذکر په اولنی ځل د تاریخ په پانهو څرګند او ښکاره کېږی. دې نه اګاهو مونږ د شاهنامهٔ فردوسی په صفحات د پنجاب د دوو ځایونو لاهور او ملتان سرسری شان ذکر وینو. چې د هندوستان په لار محض د بانډه جات حېثیت لری. او د وسط ایشیا او هند ترمینځ د دې اوپراؤ مرکز ونه وو.

اندازه ده. چې د مغل سلطنت د مکمل ضمانت او تحفظ په سبب د پنځه دریایونو ترمینځ دې سرسبز و شاداب سرزمین اهمیت بیا موند. د مختلف علاقه جات خلق دلته راغلل، خصوصاً هغه خلق چې د هندو برهمن د ظلم او جبر نه تنګ وو. د کوکروند ې په مخرفی دلته د پرشول د حملو، چپاؤ او یلغار وېره تر هه ورکه شوه. د خطرات نه ډک پرآشوب دور ختم شو، د امن او اطمینان ژوند یقینی شو. کلی، ښارونه آباد شول او د ژوند تسلسل قایم شو. د هندوستان د خلقو عموماً او د پنجاب خصوصاً

پښتون قوم څخه ارشه دریشه، ټک راټک او روابط عام شول. د پښتون
د تورې شرنګ او شرقي څخه سم کړې ځای د تعلقو رواداریه، مهمان
نوازیه او ورورولیه څخه بلد شول او د پښتون په سیمه کې مستقل
سکونت پامنه دار شول.

تاریخ لوستونو څخه معلومیږي. چې د قدیم هندوستان حدود
دریابي جهلم ته ښکته بالعموم او سرهند ته بالخصوص شروع کیدل
د دریابي سنده او دریابي جهلم منځو مانه د سنده ساګر
علاقه ښاري، غیر آباده او خشکه وه. د خشک سالۍ او بهرنیو قوتونو
د حملې په سبب دلته خلق د برکم وُسیدل او دا سیمه د هندي
اقوام او پښتون ترمینځ د No Man Land یا Buffer Zone حیثیت لرلو.

د ګندهارا تهذیبي دوران ټیکسلا د ګندهارې شاهانو د ګرمۍ په
موسم صدر مقام وو چې د دریابي سنده د موجونو او سیلابونو په سبب
خپل ځان د بهرني حملې ورنه محفوظ ساتي. د مغل سلطنت په دور
کښې چې دا علاقه د صوبه د کابل برخه او حصه وه. نو د حسن ابدال ډیر
لویې اهمیت وو. کشمیر ته د کاروان د آمد ورفت او تجارت لار د
حسن ابدال پکهلې په علاقه وه. مغل شاهان اکثر د حسن ابدال پکهلې
په لار کشمیر ته تلل. دغه دوران د پښتنو څینې قبائل دلته آباد وو
چې د دغه وخت ټیک تحریر او سفرنامو نه په دې علاقه د پښتنو د
مېشت پته لګي. واصل روښاني ۱۵۷۳ء تا ۱۶۲۸ء لیکي:

س

خټک واړه په ساړه په غومه ستېږي
له خوارۍ يې نغري مه شه پړسېږي
د بنګښ د مُغل لاس ور سپېدې نه شي
په طالع د مېيانو شه رهزن
درپسې د بنګښ ملک يې مُسلّم کړه
دعوي کيږي دے د اټک د سرې بن

د قصهٔ مشائخ (تصنيف ۱۷۳۲ع) ليکونکی خواجه محمد بنګښ د اټکی
په تن د د اټک قلعه کې چاپېره پښتانه آباد دي.

"در آن عصر اکبر بادشاه درین ملک آمده فکر ساختن قلعه و آبادی شهر کرده. و بنای یک بُرج قلعه در میان دریا کردند. که هر چهار طرف قلعه و شهر قلیم عظیم است. چنانچه طرف شمال نه صد ۹۰۰۰ هزار سبزه افغانان یوسفزئی سکونت دارد. و سمت غرب آن قلعه افغانان خټک، و طرف جنوبی افغانان بهنگی خیل و طرف شرقی افغانان سرکانی، دوتانی، و تری و غورغشتی وغیره اقوام سکونت دارد" (ص ۴۵)

ترجمه: اکبر بادشاه د خپل دوران (۱۵۸۱ع) دې ملک ته راورسيد قلعه او ښار يې آباد کړل او د دریاب په منځ کې يې د قلعې يو بُرج تعمير کړو. څکه چې د قلعه او ښار څلور واړه

اړخه مضبوط دښمن پروت وو. شمالاً لنډل ته ترې کم یولاکه ناڅوه یا نه یوسفزي وو. د قلعه غرباً خټک وو. جنوباً بهنګي خېل خټک وو. او شرقاً سرکاني دوتاني ترین او غور غښتي وغیره پښتانه قومونه آباد وو."

هري رام ګپتا لیکي:

"داځای (راولپنډۍ) د سکهه سنګر تېپور په تحت دے. دلته ډېرو یا تن خټک آباد دي سکهان چې حمله وکړي نو دوی خراج ادا کړي. خو چې هغوی ستانه شي نو دوی بیا خپل آزاد حیثیت برقرار وساتي. د راولپنډۍ نه څو په یو رته شپږ میله لرې "خارپوره" سرایې ده. چې جرخت ورڅخه د اوبو لختې بهیږي. په وله د پنځ ښتو پل دے. زمیندار یې پښتانه دي. سکهانو په دوی حمله وکړه. د دوی ښار وی ئې بوتلل خو د دوی اطاعت یې ونه منو. دې نه پورته حسن ابدال دے. چې زمیندارا یې پښتانه دي او د کابل حکومت ته خراج ورکوي. دې نه اخوا شمس آباد دے چې خټک پښتانه یې کروندګر دي. بیا اټک راځي چې د دریاب سند نه په غاړه د یوغر کیا سه پروت دے دلته د ره زره کوره آباد دي قلعه یې د خټکو پښتنو قبضه کښې ده." (لاهور مغل رانګرېزي) ص ۳۰۳)

د تاریخ ضلع پشاور مطابق:

،، دُرِّ دُرّان (احمد شاه ابدالی) بذاتِ خود پشاور سے روانہ ہو کر بہمراہی سعادتمند خان خٹک فوج مرہٹہ کے مقابلہ کو آیا اور اُن کو شکست دی۔ اور اُسی معرکہ میں سعادتمند خان کی کوششوں سے مشکور ہو کر بہ عطائے لقب سرفراز خان سرداری تا لب جہلم او سکو حاکم بنا دیا،،

(ص ۳۰)

---

د غوري خېل یوسفزي راتګ نه اګاهو د پېښور مردان او باجوړ و غاړه علاقو یاندې دلازاک آباد وو. اول یوسفزي راکوزه شول او د دریابي کابل په شمالي غاړه پراته دلازاک او سواتیان یې د هشتنګر، صوابۍ، مردان او سوات نه ۱۵۲۵ء کښې وکاډل. بیا ورپسې غوري خېل قبایل رابکته شول او د دریابي کابل په جنوبي غاړه پراته دلازاک یې د سلطان پوره په مقام ۱۵۳۳ء کښې د یو بې دست جنګ نه پس په تېښته مجبور کړل. سواتي قبایل د تهاکوټ او مانسهره ترمینځ د دریابي سنده شرقاً خطه باندې آباد شول او دلازاک د دریابي جهلم او دریابي سنده ترمینځ بودوباش اختیار کړه. خو جهانګیر بادشاه د دوی په دې حرکت ناراض شو چې څو وارې یې د کابل

و هند ترمینځ کاروان لوټ تالان کړو. هغهٔ د دوی یو لوی تعداد هندوستان پلو منتقل کړو. او د دوی د یو کم کسان په دې سیمه آباد پاتې شول. سواتیان د یوسف زی باجګذار شول او یوسف زی تر اټک و دریابې جهلم ورسېدل. نو د دې دوران د دریابې سندھ په پورتنی غاړه ختک، د غروټونه دا او د پېدل او د اکبر بادشاه او غوری خیل ترمینځ دښمنۍ او مخاصمت نه یې فائده پورته کړه او د اټک و نوښار ترمینځ آباد شول. د مغل او یوسفزی ترمینځ دښمنۍ دوی مزید مضبوط کړل او د اټک و دریابې جهلم ترمینځ په ټولی علاقه قابض شول. تر څو چې د شه حیثیت د رنجیت سنګه ترونخت قایم وو.

د اکبر بادشاه په زمانهٔ حکومت د باره موسند څینې کورنۍ د پېښور ښار مشرقي اړخ ته زرخېزه زمکونه نې دخل شول. بېچنی پلو لاړل. د دوی جاګیرداد خالصه سرکار شو. د دغه زمکو د کروندې د پاره وخت په وخت د هند رافضي او راجپوت سردارانو د هندوستان نه خلق راوغوښتل. دغه خلق دلته آباد شول متقل پاتې شول او د خالصوال په نوم مشهور شول.

د دلازاک شکست او غوری خیلو فتح محض د کلو جاګیرداد قبضه نهٔ وه بلکه په دې کښې کور کهتری څخه پیوست په لویه دېکی آباد د پېښور ښار څو کورونه، آسیه یاد وکانونه او د قلعه هم شامل وه.

غوري خېل د دې سيمې فاتحين او قابضين بلا شرکتِ غير وو. همايون
چې خپل ورور کامران ته شکست ورکړ دا او دلته يې د سکندر خان ازبک
سنبال دېره کړو نو د پړتار غوري خېل د پېښور قلعه سر دوباره قبضه
کړه او د محمد همايون اتو سوخ او قبضه ملکيت ختم شو. د مرزا محمد حکيم
په زمانه حکومت د پېښور په علاقه د مغل نظامت برائې نام وو
او د هندوستان په لوره لويې لار او شاهراه د حفاظت ترحد محدود وو.

د جاګير و سرپرخاوند تکړه بهادر شمشير زن غوري خېل پښتون
دوکاندار نه وو. کاشتکار نه وو. په دې وجه د هندوستان مختلف
اطراف نه خلق راغلل، دوکاندار او کاشتکار شول.

د کابل په سيمه که پخوانے ايراني نژاد سُني مسلمان تاجک دوکاندار
وکاشتکار وو نو د پېښور په سيمه هندي نژاد اعوان و باغبان دوکاندار
وکاشتکار وو. پښتانه محض مالکان وو او د دوئ کار شمشير زني او د
خپل کاروندا و حفاظت او تحفظ وو.

" Of all the races, Afghans are the Chief", both as predominating in numbers and as being the governing people"
( Afghanistan by H.W. Bellew P- 14)

ترجمه: پښتانه تر ټولو نورو نسلونو خلق نه زيات دي د تعداد او حاکميت دواړو په لحاظ دوی ته فوقيت حاصل دے.

د تواريخ نه څرګندېږي چې د سبکتګين او راجه جے پال ترمنځ
۹۷۹ء او محمود غزنوي او راجه جے پال ترمنځ ۱۰۰۱ء کښې چې د پېښور
پر مقام کوم جنګونه وشول. او د انند پال ۱۰۰۸ء کښې شکست نه پس
د پېښور سيمه د مسلمانانو په قبضه او ملکيت شوه او د پاک هند

علاقه ﺳﻨﻪ ۱۰۰۱ ﺗﺎ ﺳﻨﻪ ۱۰۲۶ د اسلامي لښکر متواتر او ولسو حملو د هند و شاهيه رعب، دبدبه او شان و شوکت ختم کړ. نو د پښتنو مسلمانانو رخ توجه او پام د پاک و هند په زرخېزه زمکو مرکوز شو. ۱۱۷۳ ع کښې د غوري قبائيلو يو مشر شهاب الدين محمد غوري د دهلي سلطنت قبضه کړو او دغلته يې په وړومبي ځل اسلامي حکومت قائم کړ دغه نه وروستو د پښتنو کښې شمېر بهادر شمشيرزن د پاک و هند په کافي زمکه قابض شول.

„ د هند په سيمه اسلامي تاريخ دراصل د پښتنو د فتوحات و مقبوضات تاريخ دے“.

(افغانستان از مېکمن صـ۳۶)

د پښتنو دغه شمشيرزن بهادر شاه زلو د پاک و هند علاقونه په وړومبي ځل د پر هندي نژاد ځان ځغځه د کار خدمت د پاره راوستل - دلته د دوئ نوکران چاکران شول، آباد شول، نسل يې زيات شو او دلته مستقل پاتې شول لکه بهادر کلے، لنډي پرنجو، نفرارخاني، بلاباي کړې تمردين او داسې نورو د پر وکلو کښې اوس هم دغه هندي نژاد خلق موجود دي. د هند کي په نوم مشهور دي. نسلاً اصلي زا به يې هېره کړې ده. پښتنو ځغځه کښه وه دي او محض په پښتو ژبه پوهېږي.

---

تزکِ بابری د روښې معلوم کتاب دے. چې دَ دې علاقې دَ ځینو قبیلو لکه آفریدای، یوسفزی، اورکزی، بنګش، توری، دلازاک ګګیانی، مومند، محمدزای، لوهانی، نیازی، عیسی خیل، خلجي او وزیر ذکر کوی.

بابر خو وارې دَ پښتون ښارَ دَ کوهاټ په سیل راغلے دے خو هغهٔ دَ پښتو رپه بیمه دَ هند کی قوم هیڅ ذکر کړے نهٔ دے.

دَ ګلبدن بیګم همایون نامه کښې دَ پښتنو ذکر موجود دے خو دَ هند کی په حقله تحریر ښتشته.

دَ ابوالفضل اکبرنامه، او آئین اکبری هم خاموش دی. دَ اکبر دَ فوج یوه لویه دسته دَ پښتونی قبائیل په ځوانانو مشتمل وه. خو دَ هند کی نسل څوک هُم دَ اکبر په فوج کښې شامل نهٔ وو.

وغه حال دَ تزکِ جهانګیری دے. عملِ صالح بادشاه نامه او عالمګیرنامه دَ هند کی نسل او ښې متعلق هیڅ اَثار نهٔ لری.

دَ علی محمد مخلص ،، حالنامه ،، صفا ښائی چې " بګرام " یا پښبور ښار دَ غوری قبائیل ملکیت او جائیداد دے.

،، اکبر بادشاه نیز با حوالِ ایشان بخشوده بدان قرار که از بزرگان وَلد خدایان غوریا خیل چند کس را به طریقِ برعمل طرفِ هندوستان برد. و وطن را که زمان قدیم بګرام بود والحال به پېښاور مشهور است. هُم

بدیشان مقرر داشت. (ص۱۵۵)

ترجمه : "اکبر بادشاه دوئ (غوری خیل) بخیل حالت پرښودل او په دې اقرارئ معاف کړل چې کوم دوئ نوکسان په هندوستان نه یونګا بوزی او کوم دوئ وطن چې بنحوا په بګرام مشهور دو، او داوس ورته پرېښود وانی، هم دغسې به کوم دوئ ملکیت وی.

دریاییې باره یوه زمانه کې پرېښود او ستي بانه او په مبهم بهیږه. چې کوم قصه خوانی په خواکښې اوس د شاهي کنه په نوم شهرت لری. دا تهو له علاقه کې "باړه موسند" نامکه کوه. جناح پارک، بچړه اوکم چاونهی علاقه کې خلیل تمام ملکیت وو چې مختلف ادوارکښې دا تهو لره علاقه کې وخت حاکمانو قبضه کړه. او دلته بیا کې بهر مختلف خلق آباد کړل.

" تپۂ سوم بنام قصبۂ باگرام مشہور ہے اور تپۂ خلیل سے چهارم حصه کا مالک سمجها جاتا ہے. مگر به باعث تبدیل حیثیت اِس باگرام کو اُس تپۂ خلیل سے مناسبت حصه نہیں ہے. یه قصبۂ باگرام ہمیشه به اختیار حکام رہا ہے. ہرایک حاکم وقت نے به لحاظِ خدمت کی، جس کو جاگیر یا برائے آبادی زمین عطا کی. وہی به منزلۂ مالک تصور ہوتا تھا. جس کا قبضه دیرینه ہوگیا. اکثر اُسی نے

زمین مقبوضہ کو بذریعہ بیع و ہبہ منتقل کرادیا ہے
اور بہ لحاظ قبضہ قدیم کے اُس کی طرف سے یہ انتقال جائز
سمجھا جاتا رہا۔ کل رقبہ ذیرہ باگرام کے اب چھبیس محال
تصور ہوئے ہیں۔ اور ہر ایک مورث نے علیحدہ علیحدہ
رقبہ بذریعہ خرید یا ہبہ یا باجازت حاکم آباد کرلیا۔
اور بعض خاص پشاور میں رہ کر مالک ہیں اور جو زمین
ملکیت سرکار سکھان یا سلاطین و امراء درانی کی تھی
اُس پر بھی اب انگریز سرکار ہی مالک ہے
(تاریخ ضلع پشاور از گوپال داس ص ۳۳۲)

---

# هزاره

۱۳۹۸ کال دو۔ چې تیمور لنګ د پښتنو په امداد د دهلي تغلق حکومت تاخت و تاراج او پائمال کړو۔ د هندوستان نه په واپسۍ د شاهراهِ هند و کشمیر په حفاظت د نارو غوانانو پښتنو یوه پلټن

„هزار منګ" (منګ: پلټن) د چغتائي ترک توق (تومن) سردارانو ماتحت مقرر کړه. دغه هزار منګ اټک څخه نیولې د دریاب سنده په ښکته غاړه د پیچ په علاقه مقرر وه چې د بهرني حمله آورو نه دفاع د کشمیر یې وساتي. د هزار منګ په مناسبت دا علاقه د هزاره قریش په نوم مشهوره شوه. انګریزانو چې راغلل هغوی د راجه پکهل په علاقه مانسهره بشمول ایبټ آباد د هري پور د ضلع هزاره په نوم مشهوره کړه. او د مانسهره د سیمې د در نوم پکهلي مشهور شو. حالانکه مانسهره، ایبټ آباد او هم چې هري پور هم د هزار منګ د سرګرمو او ټولنې د اډانګې علاقه او مرکز نه وو بلکه د غازي، حضرو یعنې د چچ علاقه وه. البته د هزار منګ په دې نوچي دسته کښې کښې شمېر نیازي، مشواني، سرکاني سرواني، کوړانې او ترین جدون پښتانه شامل وو. نو غالباً ګمان دے چې په دې اساس دا نوم تجویز او خوښ کړے شو. هزاره، کشمیر انګریزانو په ګلاب سنګه د ۷۵ لاکه روپو په عوض ګانه کړو. خو د پښتنو سخت مزاحمت او متواتر جنګونو هزاره د ګلاب سنګه دست اندازۍ او قبضه ملکیت نه بهر کړه

## هري پور

دسمبر ۱۸۱۲ء وو چې رنجیت سنګه په کشمیر حمله وکړه. عطا محمد خان یې مزاحمت وکړو. په ټکرونو پښتانه شهیدان شول نو شکست یې وخوړه او عطا محمد خان والیئ کشمیر په دې شرط

مجبور شو چې د اټک قلعه د فوجدارۍ نه خپل ورور جهانداد خان افغان معزول کړي او د سکھ سرکار مسلمان سپه سالار فقیر عزیزالدین ته یې بغیر جنګ وجدال حواله کړي. د دې معاهدې په نتیجه دا شو چې رهتاس نه تر اټکه سکهان قابض شول او هزاره د دوی ما تحت شوه. د پښتنو د سکهانو ځخه د هزارې علاقه بېرته اخېستو د پاره درې جنګونه وشول او عن چې ستمبر ۱۸۲۳ء کښې هری سنګھ ځخه د هزاره د پکهلي او دهتوړ په مقام جنګونو کښې زرګونه پښتانه شهیدان شول. هری سنګھ د اټک په قلعه د پښتنو د پکهلي په لار د حملې نه د بچاؤ او تحفظ په خاطر په یو خاص مقام نیل سکھ نومې مقر د کړو چې وروستو دغه ځائې د یو ښار شکل اختیار کړو او د هری پور په نوم مشهور شو. د سکھ او د انګریز سرکار دوران د پنجاب نه کښې شمېر خلق راغلل او دلته آباد شول.

## ایبټ آباد

د ۱۶ ر ستمبر ۱۸۴۶ء د انګریز او سکھ سرکار د معاهدې مطابق د سکھ سلطنت د نورو فوجي مرکزونو نه علاوه جان نکلسن او هربرټ ایډورډ د ډیره جات او بنوں، جارج لارنس او رېنل ټیلر د پېښور میجر ایبټ د هزارې او مستر هربرټ د اټک اسسټنټ ریذیډنټ مقرر شول خو ۱۸۴۷ء کښې د پېښور هزاره او اټک فوجي سپه سالار سردار چتر سنګھ د دې معاهدې خلاف شو او ځان یې آزاد حکمران اعلان کړو انګریز ریذیډنټ ته هیبت واخیستل. جارج لارنس کوهاټ ته وتښتېدو

او میجر ایبټ مشوانی قبائل څخه پناه واخیسته. د انګریز سرکار او چترسنګه ترمینځ نومبر ۱۸۴۸ء د سمبر ۱۸۴۸ء او په ۲۱ فروری ۱۸۴۹ء جنګونه وشول. چترسنګه شکست وخوړو. او بمعهٔ خپل زویې شیرسنګه ګرفتار شو. انګریز سرکار د ۲۹ مارچ ۱۸۴۹ء اعلان مطابق سکه سلطنت بمعهٔ شرقی افغانستان ضبط کړو. میجر ایبټ د هزارې حاکم شو. هغهٔ په هزاره کښې د پښتنو خلاف د یو مستقل فوځی کیمپ جوړولو تابیا وکړه اول یې شیروان څخه د دې مرکز د تعمیر بند وبست وکړو. خو بیا یې اراده تبدیل کړه او د موجوده ایبټ آباد په سیمه یې دغه فوجی مرکز مقرر کړو. دلته د هندوستان مختلف علاقه جات او خصوصًا پنجاب نه د پښتون خلاف فوځ او په نور سرکاری ملازمت خلق بهرتی شول. ایبټ آباد د یوښار شکل بیا موند. د سکه د بربریت نه چې پنجاب نه کوم مهاجرین دې علاقو ته راغلی وو او غرونو کښې یې پناه اخیستی وه. دلته راغلل. جدون او ترین وغیره پښتون قبائل هُم غرونو نه راکوز شول دلته اباد شول. خپله ژبه یې هیره کړه او د هند د پنجابۍ په ژبه رنګ اوګویان شول.

* سکهوں کے قبضہ سے پہلے هزاره شامل سلطنت افغانستان مسلمانوں کے قبضہ میں تھا۔ ۱۸۴۶ء میں همراه ملک کشمیر مہاراجہ گلاب سنگھ کے هاتھ فروخت ہوا جب اُس سے بندوبست نہ ہوسکا۔ توپھر شاملِ دربار لاهور

کیا گیا۔ اس ملک کے پہاڑی لوگ ایسے جنگجو نہیں ہیں جیسے دریائے سندھ کے مغربی پہاڑوں کے لوگ خیرہ سر اور دلاور ہیں "

(حیاتِ افغانی از حیات محمد خان ملک)

د پاک بھارت د ویش نه اګاهو دلته پښتنو نه علاوه اډوړ اعوان بلوچ، بھاټیه، برهمن، ګکهړ، ګورکهه، جاټ، کرل، کشمیري، کهتري خوجه، مشواني، مغل، پراچه، قریشي، راجپوت، سید او شیخ نسلونه اباد وو.

جارج ګریرسن د هزاره د ژبې په حقله لیکي:

The Lahnda of the district of Hazara is locally known as Hindki. It is the language of the great majority of the people, but is not the only language of the district. In the extreme south - east there are also speakers of Pashto in most parts of the district and in the extreme north Gujari is spoken by the Gujars and Ajars who wander with their flocks over the hill - country. In the Tinawal hills in the west of the district there is a separate form of Lahnda called Tinawali, while in a small tract on the eastern side we have another language called Dhundli or Kairali.
(Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV Page 565)

ترجمه: ضلع هزاره کښې لاندا " ته مقامي خلق " هندکی " وائي - دا د اکثریت ژبه ده. خو ضلع کښې دغه واحده ژبه نه ده بلکه د جنوب مشرقي اکثرو علاقو کښې خلق پښتو وائي او د دې ضلعې شمالي علاقه کښې ګوجران او اجړ چې په غرونو کښې مال ځاروي ګرځوي ګوجری وائي. د ضلعې مغرب

طرف دَ تناول په غورونو کښې دَ لاندې یو بل شکل ته دلی "
ته به ده۔ بیا مشرق طرف ته بیو ورکوټې شان علاقه کښې بلانړ به
ده چې دهو ندړلی یا کسړولی ورته وائی۔،،
میک لیګان لیکی:

In Hazara also Hindi is said to be superseding Pashto even among Pathans and allied tribes.
(Census of India 1891 by E.D. MacLagan Page 198)

ترجمه: هندی دَ هزارې پښتنو او دوی څخه ملحق قبائیل
کښې هُم دَ پښتو ځای نیسی۔

## ډیره اِسمٰعیل خان

دا ځای چې دَ ډیره اسمٰعیل خان ښار ۱۴۸۸ء کښې جام اسمٰعیل خان
هوت آباد کړی دی چې دَ ملتان دَ حاکم سلطان حسین لنګاه جاګیر دار او دَ
سکیره او ډیره اسمٰعیل خان نواب وحاکم وو۔ څینې وائی چې اسمٰعیل خان
او دریا خان دوه ورونه وو۔ دَ بهکر نه بهر یې دَ دریای سندھ
بالمقابل ځای ونه چو پکړل چې خلقو څخه دریای سندھ نه دَ پورې
کښه دکو مک او امداد وکړی۔

۲ جون ۱۸۱۸ء دوې شهزاده کرک سنګه دَ ملتان دَ پښتنو
حاکم نواب مظفر خان سدوزی خلاف په حمله وړم ځل فوج کشی وکړه
او ئیا کلن نواب مظفر خان پسر شجاع خان صفدر جنګ یې زبردست
مزاحمت وکړو څو زرګونو پښتنو څخه یې جام شهادت نوش کړو او

رنجیت سنگھ، ملتان، خانګړه، مظفرګړه او شجاع آباد قبضه کړل د نواب مظفر خان زړکو نه سرائیکي، الواج، کاشتکار، رعیت او اهلکار د سکه قوم د بربریت، درندګۍ او بهمیت نه د محفوظ مقامات او پناه ګاه په تلاش شول. د دوی یو لوی تعداد د دریایې سنده نه راپورې وتو او ډیره اسمعیل خان کښې پښتنو ته په پناه اخستو مجبور شول.

د ۱۸۹۱ء، ۱۹۰۱ء او ۱۹۱۱ء د مردم شمارۍ مطابق دلته پښتنو نه علاوه اروړه، اعوان، بلوچ، بهاټیه، برهمن، ککهر، کورکهه، جاټ کشمیری، کهتری، کهوکهر، مغل، پراچه، قریشی، راجپوت، سید او شیخ وغیره نسلونه آباد دی.

جارج ګریرسن د سرائیکي په حقله لیکي:

**In Sindhi, the word Siro signifies, the upper country i.e. the up-river- Country and is specially applied to upper Sind , or that part of the province which lies north of Sehwan on the Indus. From this is derived the word sirai, an inhabitant of the Siro, and Siraiki the Language spoken in the Siro**
**(Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV by G. Grierson P - 359)**

ترجمه: په سندهی ژبه کښې پورته پاسنۍ علاقې ته "سیرو" وائي. یعنی هغه علاقه چې د سیند نه پورته ده او دانوم د سنده د پورتنۍ علاقې ځنه مخصوص دے. یا د صوبې هغه برخه چې د دریایې سنده په غاړه سیهون نه شمال پلو پرته ده. دې نه سیرائي لفظ جوړ دے چې د سیرو د وسیدونکو په معنی دے او چې سیرو کښې کومه ژبه ویلے شي هغې ته سرائیکي وائي.

یو بل ځای لیکي:

**The local name of the upper Sind is Siro and the language of the country is a form of Sindhi , known as Siraiki or up-country Sindhi. (Linguistic Survey of Pakistan Vol : IV P - 240)**

ترجمه: د سندھ د پورتنۍ برخې عام نوم "سیرو" دے او ژبه یې د سندھي په رنګ ده چې د سرائیکي په نوم معروف ده - یعنې د پورته علاقې ژبه "

جارج ګریرسن وائي چې د بنوں او ډیره اسماعیل خان په خواوشا کښې کومه ژبه عام مروج ده - دا "تهالي" ده - تهالي د "تهل" په مناسبت نوم دے چې د سلسله کوه نمک او مظفرګړه ترمینځه شاړه او صحرائي علاقه ده، هغه لیکي:

**The language is known as Thali or the language of the desert. The same form of speech is spoken across the Indus in Dera Ismail Khan and Bannu------- A slightly polished form spoken in the town of Dera Ismail Khan and its suburbs is known as Derawal (Linguistic survey of Pakistan Vol : IV P - 381)**

ترجمه: دا ژبه په "تهالي" مشهوره ده یعنې صحرائي ژبه یې - د دریاب سندھ نه پورې غاړه او خوا وشا علاقو کښې په لږ ترقي یافته شکل کښې دا ژبه د "ډیره والي" په نوم یادیږي:

**Returning north, in the northern half of the Sind Sagar Doab . and in the adjacent part of the District of Dera Ismail Khan . there is Thali or dialect of the Thal or desert. (Linguistic survey of Pakistan Vol: I. P - 137)**

ترجمه: شمال طرف ته چې راشئ نو شمال کښې د سنده ساګرئم
دوآب او ورځنه ملحق د ډېره اسمعیل خان ضلع کښې تهل
یعنې تهال یا صحرا لهجه ده "

۱۷ نومبر ۱۷۰۸ء دوه چې د سکهه مذهب ګورو ګوبند سنګهه دکن کښې یو پښتون قتل کړو د هغه نارینه اولاد نه وو لو په دې وجه هغه خپل یو کم ذات مرید د راجوړي کشمیر لچهمن دیو المعروف بنده بیراګي خپل جانشین مقرر کړو. هغه دکن نه خپل پنځه پیارے (د ګورو ګوبند سنګهه مریدان) ځانه سره پنجاب ته راورسېدو. سکهان سره ملګري شول. سرهند وانباله سیمې لوټ تالان کړل. ډېرګو نه مسلمانان یې شهیدان کړل. د لاهور پورې یې ټول ځماتونه وران او وسوځل. او سکهه لښکر (خالصه دل) د هلاکو او چنګیز خان یادونه تازه کړل. آخر کار ګرفتار شو. او د بادشاه په حکم په ۱۹ د جون ۱۷۱۶ء قتل شو.

د بنده بیراګي قتل و غارت، رهزني، ډاکه ماري او لوټ تالان په نتیجه کښې سکهان د پنجاب مالدار شول او خپل درګوټي ریاستونه یې قایم کړل.

۱۷۶۱ء دوه چې احمد شاه ابدالي د پاني پت په مقام د مرهټه و پوځونو لښکر ته شکست ورکړو او د هندومت د مغلیه سلطنت د قیام خیال یې ورته کړو او د هم ختم کړو. خو د هندومت دې زبردست شکست او د مغل تباه حال حکومت د سکهه قوم په زړه کښې د سکهه سلطنت د قیام

میان دولارکسږو هغوی د پنجاب په سیمه او تالاڼ او د عام عوام تزتول او قتلول خپل معمول کړی۔ احمد شاه ابدالی د سکهانو خلاف مزید څلور ځل په پنجاب حمله آور شو۔ خو د سکهانو د جنګ طرزِ عمل او طریقه کار هغه سخت پریشان کړو۔ سکهانو د باقاعده جنګ په ځای داسې چال خپل کړو چې احمد شاه به پنجاب ته راورسېد و نو دوی به ځنګل او غرونو کښې پټ شول خو چې احمد شاه به بېرته قندهار ته ستون شو نو دوی به رابهرشول او لوټ تالان به یې شروع کړو۔

احمد شاه ابدالی په ۱۴ اپریل ۱۷۷۲ء د جزام په بیمارۍ په حق ورسېدو۔ او د هغه په ځای د هغه بزدل او غیرمستقل مزاج زوی تیمور شاه بادشاه شو خو وار د هندوستان د فتح په نیت روان شو خو د مېنځ لارې نه به بېرته راستون شو۔ د هغه دې حرکات سکهان نور هم زړه ور کړل او د هغوی فوجی قوت مستحکم شو سکهه مت د هندومت یو مستقل شکل او مذهب وو۔ د برهمن د زورزیاتې او تشدد نه تنګ مظلوم، کم قوت او ادنیٰ ذات هندو، سکهه مت ته راواوړېدل

دسکهانو فوجي بربریت او ظلم و تشدد که دغه زمانه د هندومت کم ذات هندو د سکهه مت (د هندومت نوے مذهبی زوب) په قبولیت مجبور کړو نو بل اړخ ته د دې په ضد ډېر هندوان مسلمانان شول، او که یو ځل خپل سرامان په سکهه مت کښې لیدو نو بل د اسلام سره

قبولیت کښې ۔

۱۷۹۹ء کښې د سر چکیه مثل یا خاندان مشر رنجیت سنګه د کهنیه
دلې په امداد د ګجرات د سکه بهنګیانو نه لاهور قبضه کړو۔ او اپریل
۱۸۰۱ء کښې د پنجاب حاکم اعلان شو۔ پښتانهٔ د پنجاب په سیمه جاګیر
نه محروم او دستبردار شول. هغهٔ د پښتنو په ریاستو نو یلغار جاری
کړو۔ ۱۸۰۷ء کښې یې قطب الدین افغان نه قصور قبضه کړو په
دې جنګ کښې ډیر زیات پښتانهٔ شهیدان شول ۔

.. لوگوں کے بدن کے کپڑوں تک سکھوں نے اُتار لئے ۔
عورتیں ننگے سر اور ننگے بدن ، ستر سے بے بس ہو کر
جا بجا اپنے آپکو چھپاتی پھرتی تھیں مگر کوئی جگہ امن
کی نہیں ملتی تھی ۔ بہت سی اشراف عورتیں جنہوں نے
کبھی بیگانہ مرد کی صورت نہیں دیکھی تھی ، اپنے ہاتھ
سے پھانسی لیکر مرگئیں ، کئی چاہات میں کود پڑیں ....
... بہت سے جوان عورتیں ، لڑکیاں اور لڑکے سکھوں نے
شہر سے پکڑ لئے اور غلام بنانے کے ارادہ پر پاس رکھ لئے ۔

(تاریخ پنجاب ص۱۸۳ کھنیہ لعل )

رنجیت سنګه ۱۸۱۲ء کښې د اټک په قلعه بلا مزاحمت قبضه وکړو۔
پښتنو نه یې کشمیر واخستو. ۱۸۲۱ء کښې شیر محمد افغان نه منکیره
او ۱۸۲۷ء کښې نواب شهنواز خان افغان نه یې ډیره اسمٰعیل خان

قبضه کړو۔ دغسې د پښتنو د سکګونو کلونو بالادستئ او برترۍ د بارکزي
سردارانو د سازشي ذهن په سبب ختم شوه۔

د غوري، خلجي، سادات، لودي، سوري او ابدالي شاهانو په
زمانه کښې پښتانهٔ د تاج و تخت مالکان وو۔ نو د خاندانِ غلامان او
تغلق په زمانه کې پښتنه ورسپاهي په حيثيت د اعلیٰ رُتبو خاوندان وو
بابر د دوئ په برکت د هند د سُلطنت مالک شو۔ مُغل کهٔ هر څو د پښتنو
خلاف او د راجپوت په حق کښې وو۔ ولې د راجپوت من مانی او راقضی
سردارانو د سرکشئ سمُون د پاره د دوئ ضرورت هم د پوزیاته محسوس
کېدو۔ دغه وجه وه چې د دریابې جهلم نه ښکته او د هندوستان ودکی
په زرخېزه زمکه دوئ د اهم مرتبو او جاګېرونو مالکان وو۔

ملک یې وو راکړے په پنجاب کښې متصل
حُکم د پادشاه وو صادر شوے په پرېښول
(خوشحال خان خټک)

د سکه بربریت او د رندګی وه چې د پنجاب په سیمه سکګونو کلونو
داسې آباد پښتون جاګیردار د خپل اراضي ملکیت نه دستبردار شو
د جنګونو دوران زرګونه پښتانهٔ شهیدان شول۔ د پښتون مسلمان
جاګیرونه یې سکه سردار و نیول۔ د پنجاب په سیمه د سکه خالصه دل
د ظلم و ستم نه زرګونه مسلمانان دریابې جهلم نه راپورې وتل۔

د کاغان وکلیات په کوهستان کښې ئې پناه واخیسته، تحوک د دریابې جهلم او دریابې سند هترمینځ د سند هساګر په علاقه آباد شول د مشرق نه مغرب پلو ډ مهاجرینو دا اولنۍ نقل مکانی او مهاجرت، په دې پلو یې تعداد کښې د سکه سردارانو د بربریت د لاسه د نحوانلق منتقل شول. په دې مهاجرینو کښې یو لوییې تعداد د پښتون جاګیردار کارندو، باغبان، اعوان او اهل کار هم شامل وو چې د سکه سرکار د بې سره خالصه دلی د خوف وغضب نه د دریابې سند هو په دواړو غاړو ډېره شول،

،، پنجاب پر سکھوں کا مکمل قبضہ کے بعد پورے پنجاب میں وحشت اور بربریت کا ایک نیا دور شروع ہوا - مسلمانوں کو شدید زحمتوں کا سامنا کرنا پڑا۔ ہر طرف قتلِ عام اور تاراجی املاک کا دور دورہ تھا۔ مساجد، مُسلم مدارس او مقابر مسمار کر دیئے گئے۔ اپنے مخالفوں کو صفحۂ ہستی سے مٹانا سکھوں کے نزدیک مقدس مذہبی فریضہ اور گروجی مہاراجہ کی خوشنودی کا ذریعہ تھا،،

،، سکھ حکومت کے دوران معاشرتی زندگی میں امن وسکون و اطمینان نام کو بھی نہ تھا۔ اِن حالات میں اکثر لوگ پنجاب چھوڑ کر نسبتًا پُرامن علاقوں میں چلے گئے۔،،

"لوگ پنجاب سے ترکِ وطن کر کے دوسرے صوبوں میں جانے لگے کئی سربرآوردہ مسلمان گھرانے تو بھاگ گئے اور جو باقی بچے انہوں نے طوعاً و کرہاً سکھوں کی سرداری قبول کر لی"

(تاریخ پنجاب از اقبال صلاح الدین ص ۲۳۹، ص ۳۶۶، ص ۳۶۹)

مارچ ۱۸۴۹ء دوچې د سکھ سلطنت اختتام ته ورسید و - پنجاب او د پښتنو په سیمه انګریز مسلط شو - د سکھ سردارانو او خالصه قوت او طاقت منتشر شو او انګریز د بست و کشاد مالکان شول هغوئی نهٔ غوښتل چې د پښتون سپاهیانه صلاحیت او جنګجویانه قوت دوباره بحال او مضبوط کړی - سکھ نه هم په ویره او خوف وو - د پنجاب و پښتنو خوا په سیمه یې خپل داسې منظورِ نظر کسان جاګیرداران سرداران، خانان[1]، ملکان، چودهریان او اربابان مقرر کړل چې د دوئی د حکم په تعمیل وو - د انقلاب مطلب تبدیلي وی - لویې کورونه واړه او واړه لویې شی - د دغه پالیسی په عمل نمونې په سیمه انګریز حکومت سل کاله دوام واخیست چې د ګونه میله لرې یورپ نه دلته

---

[1] مونږ دلته د هغه خان خبره نهٔ کوو چې کوم خان یا مشر د قبیلې په خوښه او مرضۍ مقرر وو، او د حاکم وخت ملا خلت پکښې شامل نهٔ وو د دغه قسم خانان یا مشی اخلاف او س هم دې کاد کښې آباددی چې د خواریه او غربت ژوند تیره وی -

د تجارت په غرض راغلی وو - د غسې پښتون نهٔ یوازې دا چې د پنجاب
او دریابې سِنده و جهلم ترمینځ جائیداد او جاګیرنه محروم شو
د هندوستان د کن او کشمیر په سیمه یې هم قوّت او شان و شوکت
ختم شو - بلکه دا به ووایو چې اصلی پښتون د چا د تورې د زړه او
شونګ شرقي چې په وطنونو مشهور وو - د سکهه او انګریز حکومت دوران ذلیل
او خوار زار شول او د ټوک ووړه پامته دار شول -



د تاریخي شواهداتو، ثبوتونو، حقائق او روایاتو په رڼاکښې مونږ داو ټلي شو چې هندکی :

۱. د هندوستان د سیمې هغه باشندګان دي چې د محمودِ غزنوي په هندوستان د حملو نه وروستو مختلف ادوارکښې مسلمانان شوي دي. د هندو یا هندي کلمه کافرا و مسلمان دواړو د پاره مستعمل وه چې جائز او مناسب نۀ وه د کافرا و مسلمان په شناخت کښې فرق او پښتون راوستلو د پاره " هندکی " نوم متعارف شو.

۲. د هندوستان نه مختلف وختونوکښې پېشه ور کسبګر خلق راغلل کلو، بیا رونو کښې آباد شو. د هند په مناسبت " هندکی " مشهور شول.

۳. د مغل سلطنت نه اګاهو د پښتون قبائل اوها نه د قبیلې " مشر " یا " خان " په شخصیت بنا، وه. مغل نچل انتظامی او مالی امور د پاره " خان " نه علاوه د قبیلې مشرا رباب " مقرر کړو او دغه سلسله د سکهانو او انګریز په دور کښې جاري وه.

اول زمانه کښې د شمشیرزنۍ او بهادرۍ دور وو. د کلی بانډو

اهمیت وو. د جاګیردار او زمیندار، راج، خان، نواب څخه د عوام غریب ضرورت او حاجت پوره کېده. دغه کلي او خاني اربابانو د عام خوشحالۍ او سوکالۍ مراکز وو. د ښاریو اهمیت نه وو د هندوستان نه پوهنیات هندوان راغلل چې د برهمن د ناروښیانو نه تنګ او پرېشان وو. د پښتون خان، نواب، ملانه مت ئې اختیار کړو مسلمانان شول. دلته آباد پاتې شول.

۱۴ د هندوستان نه ډېر شودرا راوړسېدل. د کور کوڅې او حجرې صفائي یې په غاړه شوه مسلمانان شول د مصلیانو په نوم مشهور شول لکه څنګه چې انګرېز څخه شودرا هندوان راغلل چوړیان مشهور شول او عیسایان شول.

۱۵ پښتون بهادران او شمشیرزن وو. د هغه کار کړ کروندګر، دوکاندارۍ یا نور کسب هنر پېشه نه وو. د هغه کار د جنګ په میدان د مړانې او بهادرۍ خودنه او مظاهره وه د خپل رعیت استحکام او تحفظ وو نو په دې وجه هغوئ خپل اهلکار باغبان، اعوان، پراچه، نائي قصاب او جولا ته دغه کارونه حواله کړل. د دغه کسب او هنریو لویې تعداد هندوستان نه راغلي خلق وو، نو په دې وجه هندکي مشهور شول.

د پښتو نخوا په سیمه خینې کسان د هند یا هندوستان په مناسبت د هند کي په نوم شهرت لري خو د پېښور یا هزاره په سیمه اباد زیات تعداد د هغه خلقو دے چي "هند" نخه یې هیڅ قدیم تعلق ربط یا مناسبت نیشته. لکه د کشمیري ئې به کشمیري ادا وه چي د رنجیت سنګه د بربریت نه دلته راغلل. د راجپوت او هندوستاني ئې به هندکي وه. د ازبکي سردارانو ئې به فارسي وه. د انقلاب روس په وجه چي کوم ازبک تاجک دلته راغلل. د هغوئ ئې به هندکو نه وه. د چنګیز خان د درندګي او بهیمیت په سبب چي د عباسیانو څه شکست خورده لښکر دلته راو رسېدو د دغه عباسیانو ئې به هم پښتو نه وه. د هزاره، د جدون، ترین، سواتي او مشواني وغیره پښتون قبائل ئې به پښتو وه.

پېښور ښار کښې ډېر پښتانه آباد دي. سید، قریشي او بخاري آباد دي. خو هغوئ هندکو واني. مطلب دا دے چي د قام و نسل په لحاظ د هندوستان په مناسبت دلته ډېر کم هندکي آباد دي البته د دوئ ئې به "هندکو" ده. چي د سکهه سلطنت سرکاري ئې به "پنجابي" نه ورته او مشابه وه. د سرکار په ئې به خبرې د مالي منفعت باعث وې. نو لازمي ده چي دا سې حالت کښې هر کس د سرکار ئې ته اهمیت ورکوي. د پاک و هند د ویش نه اګاهو دلته په زرګونو سکهان هندوان په ښهري علاقو کښې آباد وو. تاسو که د آثار قدیمه د لائبرېرۍ سرکاري کاغذات او ریکارډ د کورټ نو تاسو به حیران شئ چي په دغه کاغذات نه نو د

هند کې نوم ذکر شته دے او نه دلته چرې په هند کې تر به مشاعره شوې نده البته د پنجابي ټکور مکهی او پښتو تر به کښې مشاعرې او محفلونه عام وو.

دلته د هغه زماني د څو مشاعرو د انعقاد په ذکر اکتفاء کوو.

په ۶/۲۴ ۲۷ پېښور کښې د پنجابي یوه مشاعره وشوه. په دغه مشاعره کښې د پنجاب، د لاهور، امرتسر او راولپنډۍ د یارلس سکهان او دوه مسلمانان شاعران شامل وو. د صوبه سرحد نه په دغه مشاعره کښې فیروز دین، مورلی سنګه، مېټهو، پرتاب سنګه او امر سنګه خاص شاعران وو.

مراسله نمبر آئی، بي، نمبر ۱۷۸۶- سیریل نمبر ۲ بتاریخ ۶/۲۴ ۱۰

د پېښور صدر بازار کښې په ۸ مئی ۱۹۲۵ء د هندو سبها د احاطه دوران کښې یوه مشاعره وشوه. په دې مشاعره کښې رام ناتهه آزاد، نارین سنګه عظم، فیروز دین، راشد اختر، شیورام ګوسوامي پنهان، کانسي رام، هیرا سنګه درد، میر هلالي، ملک سنګه، دلیپ سنګه، هرنام سنګه او نانک سنګه شامل وو.

(فائل نمبر ۳۶ سپیشل برانچ ص ۱۳۹ تا ص ۱۴۳)

په ۱۷ اکتوبر ۱۹۲۶ء یوه مشاعره وشوه چې په دغه مشاعره کښې پنځه شپږ سوه کسان شامل وو. دې مشاعره کښې سپوران سنګه پرون کرم سنګه کازلور، نانک سنګه عاجز، بهګوان سنګه بهان، هرنام سنګه صابر جوهر سنګه آزاد، نارنجن سنګه دیوانه، راجندر سنګه شیش ناګ

جي سنگه فقير، سنتوک سنگه پريم، هرنام سنگه تپش، نيرمال سنگه نيرمال هرنام سنگه دُکهي، عطار سنگه عطار، گورمکه سنگه مسافر، ملک سنگه مُسافر او جگت رام پريم شامل وو.

دغسې په ۱۸، اکتوبر ۱۹۲۶ء يوه بله مشاعره وشوه. دا مشاعره دَ مقابلې وه.

په دې مشاعره کښې فيروز دين فيروز، نانک سنگه عاجز، لال چند بسمل، پُران سنگه پُران، خاص شاعران وو.

سيريل نمبر ۲۸ بي ۲،۱ اکتوبر ۱۹۲۶ء

دَ انجمن بزمِ پنجابي پښور تحت په ۵/۲۷ ۲۲ دَ مقابلې يوه مشاعره په شاهي باغ کښې پينځه بجې ماښام کېدونکې وه دَ انجمن سيکرټري به خليل الرحمان وي مراسله نمبر ۸ س ۲۷ سپيشل برانچ سيريل نمبر ۲-۳۰ بتاريخ ۵/۲۷ ۲۱

دَ انجمن بزمِ پنجابي پښور يو اجلاس په ۵/۲۷ ۲۲ په شاهي باغ کښې وشو. په دې مشاعره کښې صينهو او سائين (احمد علي) په پنجابه کښې نظمونه واورول. دوه سوه کسانو په دې مشاعره کښې شرکت

